# سوله او جګړه


خپرونکې : د سنايي پرمختيايي موسسه
مسول مدير : راز محمد دليلي
ليکونکی : احمد فريد «عارفي»
پښتو ژباړه : امان الله «لودين»
انځورګر : سلطان حميد «فانوس»
کمپوز او ډيزاين : سيف الله «زماني»

لومړی چاپ : ۱۰۰۰ ټوکه د NCA مالي مرستو اداره تله ۱۳۷۸
دويم چاپ : ۵۰۰۰ ټوکه د US-BPRM په مالي مرسته د IRC-UGP له خوا ، ليندۍ ۱۳۷۹
دريم چاپ : ۲۰۰۰ ټوکه د Asia Aid TroCAIRE په مالي مرسته ۱۳۸۰ هـ. ش
څلورم چاپ : ۱۰۰۰ ټوکه د سنايي پرمختيايي موسسې SDF په مرسته ، مرغومي ۱۳۸۱
پنځم چاپ : ۱۰۰۰ ټوکه د سنايي پرمختيايي موسسې SDF په مرسته ، وږی ۱۳۸۲
شپږمه چاپ : ۲۰۰۰ ټوکه د سنايي پرمختيايي موسسې SDF په مرسته ، ليندۍ ۱۳۸۲
اوومه چاپ : ۱۰۰۰ ټوکه د سنايي پرمختيايي موسسې SDF په مرسته ، غويي ۱۳۸۴
اتم د پښتو چاپ : ۱۵۰۰ ټوکه د سنايي پرمختيايي موسسې په مالي مرسته د ۱۳۸۵ کال د د سلواغې مياشت
نهمه طبع پښتو : ۱۰۰۰ توګه د سنايي پرمختيايي موسسې په مالي مرسته د ۱۳۸۶ کال د کب مياشت
لسمه چاپ پښتو : ۱۰۰۰ توګه د سنايي پرمختيايي موسسې په مالي مرسته د ۱۳۸۶ کال د کب مياشت







په کابل کې پته : پنځم سړک، انصاري څلور لارې د محمد علم فيض زاد ليسې خواته
تيلفون : ۲۲۰۱۶۹۳ - ۰۲۰
پست بکس : ۱۸۱ کابل افغانستان
بريښنا ليک : sieal@brain.net.pk
انټرنيټ پانه : www.sanayee.org -www.nawidefarda.org
په پاکستان کې پته : اوکزي پلازې شاته، يونيورستي تاون، پېښور پاکستان.

بسم الله الرحمن الرحیم

# د اوسني چاپ سريزه

د سولې او جگړې تصويري کيسه چې په (۱۰۰۰) ټوکه ورستی چاپ په دري ژبه د سنايي پرمختيايي موسسې له خوا چاپ شو او (۱۰۰۰) ماشومانو او ځوانانو ترلاسه کړل. د مينه والو د زياتې تندې او پرله پسې غوښتنو له امله دادی نوموړی اثر په پښتو ژبه ژباړه (ترجمه) او چاپ شو.

ددې کتاب ليکونکي د سولې او سوله ايز ژوند ښايسته انځور وړاندې کړی دی. ژباړونکي هم کوښښ کړی څو نوموړی انځور د پښتو ژبې په چوکاټ او قالب کې وړاندې کړي هيله لرم اوسنی چاپ د سولې او سوله ايز ژوند په لوری يو بل موثر گام وي څو د سولې د پسرلي ثمر او حاصل په سترگو ووينو.

والسلام
راز محمد دليلي

# سریزه

ځرنګه چې ټولوټه څرګنده ده نظم، نثر او انځور (تصویر) د زده کړې او د یوې پدیدې یا مفکورې د وړاندې کوولو عمده لاره ګڼل کیږي. چې بشـــر له ډیرو پخوا زمانو څخه را پدې خوا ټولنه کې د خپلو نظریو او مفکورو د تعمیم لپاره له هغو څخه ګټه اخیســـتې ده.

ددې اصل په اساس، د سنایي پرمختیایي موسسې (SDO) د خپلو علمي او فرهنګي فعالیتونو په دوام چې د وطن د ماشـــومانو او تنکیو ځوانانو د لاښې روزنې په منظور تر ســـره کیږي. دا دی یو نوی اثر چې «سوله او جګړه» نومیږي د چاپ په ګانه سمبالیږي.

دا اثر د ورور «احـمد فرید عارفي» په واسطه لیکل شـوی دی. په دې اثر کې زیار ایسـتل شوی څو د جګړې ناخوالې او بـد رنګي او د ســـــولې ښیګړې او ښه والی د نظم، نثر او انځور په توګه دلوستونکي سترګو او ذهن ته تمثیل کړی. په وروسـتنی تحـلیل کې دا اثر لاندې پیغامونه او مفاهیم لوستونکو ته وړاندې کوي.

- د لوستونکو په ذهن کې د جګړې له ناولتیا او له هغې څخه کرکه.
- د ټولنې د وګړو تر منځ د سولې ښیګړې او د سـولې غوښتنې د مفکوری ایجاد.
- د ژوند په ټولو ډګرونو کې د جګړې د ذلت، نا پایه داري او ماتې.

- د سولې د بریالیتوب ټولو اړخونو ته امیدونه.

په پای کې د ســنایي پرمختیایي موسســي SDO اداره ددې هیله لري چې ددې اثر په خپرولو برسـیره چې یو کلتوري خدمت ترسـره کوي، یوګام د سولې او سوله غوښتني پر لور د وطن د ماشومانو، تنکیو ځوانانو او ځوانانو ترمنځ هـم اوچت کـړی وي. ځو لـه دې لارې د سولې د تعمیم پر لور په ټولنه کې برخه واخلي.

و من الله توفیق

راز محمد دلیلي

# Preface

In continuation of its past education and cultural activities, Sanayee Development Organization (SDO) has published a new peace education children book in Pashto language entitled “Sola aw Jagra” for the Afghan children and teenagers.

The author of this book is Mr. Farid Arifi, an Afghan young writer. This book gives a moral lesson form the catastrophes of war and the goodness of peace in poem and prose. The book has been illustrated with pictures in order to convey better its messages to the readers.

To say in brief this book conveys the following ideas and messages to the readers:

The ugly pictures of war and feeling of hatred fo the war.
Goodness of peace and creating peace motivations in the society.
Defeat of war in all spheres of life.
Victory of peace and being hopeful for the peace.

We hope this book would create motivation for peace among the Afghan children, teenagers and youth and would serve towards dissemination of culture of peace in the Afghan society.

With Regards,
Raz Muhammad Dalili

## سوله او جګړه

له ورځو څخه یوه ورځ ناڅاپه (نابېـــــــره) «ســـوله» او جګړه» یو له بـــل ســـره مخامخ شـــول. دې دوو پخوانیو دښمنانو ډېره موده وروســـته یو له بـــل ســـره وکتل. «ســـولې» له ســـلام وروســـته په دې ډول په خبـــرو شـــروع وکړه:

سوله: له کومه ځایه راغلې یې؟

جګړه: د فلاکت، بدبـــختۍ، پرېشـــانۍ، ســـتونزو او ... په لنډه توګه له هغه ځایه چې ستا قدمونه هغه ځای ته نه دي رسیدلي.

جګړه : ته له کوم ځایه راغلې يې؟

سوله : د پاکۍ امن، آرامۍ، خوشحالۍ ...

له ښاره له هغه ځایه چې زه د ټولو خوښه یم

او له ستا څخه کرکه (نفرت) لري.

جګړه : د سولې له خبرو په غوسه او په غربړو

شــــوه. د خپل ځان په صفت او د ســـــولې په

ملامتولو او تهدیدولو يې شروع وکړه.

**سولې او جګړې کړله يو تر بله ګفتګو**

**د خپل حـــال شرح يې کړله هو په هو**

«ســولې» له بې ځايه جر او بحــث او جنجال

څخه کرکه درلوده په نرمه ژبــه او مهربـــانه

توګه «جګړه» آرامتیا او سړه سینه توب ته را

وبـــلله او هغې ته يې داســـې وړانديز وکړ.

راځه چې دواړه لـه هغـو ځايونـو څخـه ليدنـه وکړو چې د هغو تر حـکم او فرمان لاندې دی اوله نړدې څخه د يو بل د کار ثمره او حـاصل ووينو، وروســتـه هغه ســره پرتله کړو چې چا ته ولنې ته ښه کار ســرته رســولې او کوم يوه ته ولنې ته بـدي او ضرر رســولی دی. ســولې وويل:

**راځـه : وکړو منځ د ښار ته يو سفر**

**څو پيدا کړويو د بـــل د کـــار ثمر**

«جګړه» په ډيره بــده وحشــتناکه ځيره او په

ډيرې غوســې ســره د ســولې نظر ومانه او

دواړه پر لاره رهي شــول. د لارې په اوږدو کې

«جګړې» په تکبــر او لويې بـــې له دي چې

سولې ته مخ وګرځوی سولې ته وويل:

ښه بـه داوی چې لومړی د خپلو کارونو پر تله

له تا سره له ښوونځي څخه پيل کړم ځکه چې

ما هلته ډير کارونه کړی چې هغه بـايد تاته

وښيم.

جګړې وويل لومړی به ښوونځي ته مخه کړو

بيا به موږ په بل لوری مخه کړو.

د «جګړې» له دې خبرو وروسته دواړه د هغه

ښوونځي په لور روان شول چې د ښار د لارې په اوږدو کې پروت وو ، له لرې واټن څخه يې نوموړی ښوونځی چې د اور په لمبـــــو کې ســــــــوځيده او لوګي ترې پورته کيدی وروښود .

او زياته يې کړه :

**هغه څه چې ته د خاورو لوګو منځ کې ګورې پست**

**يو مهـــال ووښايسته محـــل د زده کـړې او دلـوست**

**ما کړل بند دفتر او ديوان دده**

**ما کړل مړه ټول شاګردان دده**

**مـــــا کـړ د ښوونځی ښايســـته تعـمير خـــراب**

**مـــــا کړل سوخـــــته په اور ميز او چوکی خراب**

کړل جلا ما معلم او شـــاګرد دده

کړل جـــلا ما کتاب او قـــلم دده

دا تبـــاه کاري او وران کـــاري ټول دي کار زما

دا سبب دی چې نوم شوی په هر ځای دښـــمن زمـا



«ســـوله» چې د «جګړې» له تبـــاه کاریو، ورانیو او خوابدیو صحنو له اوریدو او لیدو ځخـه ډیـره خفـه وه. په خاصـه تـوګه د هغـه ښوونځي له ورانـو او یجاړو خونو لـه لیدلـو ځخه چې یو وخت ښکلی مکتب وو. د ژړا او اوښکو منځ کې «جګړې» تـه په خطاب کې وویل:

**ای چې تـا کـړه دومـره ظلـم او جفـا**

**تـه بـــــه خنگه څه ووايې په مخ د خدا(ج)**

**ذره ذره بـــــه پوښتنه کيږي له ســـــتا**

**په ورځې د محشـــــــر يعني ورځ د جزا**

«جگړه» بې له دې چې د «سولې» خبرو ته پام وکړي په ډير ناولې او زيږ غږ سره له«سولې» څخه غوښتنه وکړه چې هغه هم خپل کارونه او فعاليتونه د عمل په ساحـــه کې هغې ته وښيي.

«سوله» او «جگړه» په لاره رهي شول او له يو څه مزله وروســـــته له ليري واټن څخه «جگړې» ته يو ښوونځی چې په هغه کې زده

کوونکي په لوســـت لګیا (بـــوخت) وو او یو شمیر زده کوونکو د سولې ترانه ویله وښود. سـولې د خپلو فعالیتونو او کارونو تشـریح په دې توګه شروع کړه.

**دا چې ګورې لــــه ډیــر لــري نمایـــان دي**

**مکتبـــــــــونه ځای د پوهې او فیضان دي**

**تعمیرونه یې ښایســــــــته او نوراني دي**

**هــره خواکـــې یـــې ګلونـــه رنګارنــګ دي**

**زده کوونکي او ښوونکي دي خوشحـــــال**

**همـــه واړه دي دوي لیـــري لــــه مــــلال**

**په خوښي کړي منډې تر ړي ماشـــــومان**

**دوي ټول غواړي ما په ارمان د جســـم و جان**

**زما صفت په هـره زده کـــړه او مضمــون**

**دا چې خير او نيکي يم همه واړه دي ممنـون**

**دا ټوله ښکلا ده په دي ځاى د سولې د مضمون**

**امن او ســـوکالي ده ځان او روح ددي مضمون**

«ســـــــولې» د خپلو تعريفونو په پاى کې «جګړي» ته مخ واړاوه او په مســـکا کې يې چې ددې د برياوو بـيان کوونکي وو داسـې پوښتنه وکړه.

آيا نورې لاسته راوړني هم لري که نه؟

«جګړه» د لاس په واسطه ښار ته اشاره کوی.

دا چې د ښوونځي په بحث کې جګړې ماتې خوړلې وه نو داسې یې وګڼله چې د ښار په باره کې په بحث کې به بری ومومي. نو د ښار په لوري په حرکت شول او «سوله» یې د ښار لوري ته وبلله. بالاخره د ښار په نږدې شاوخوا کې چې هر څه وروان ویجاړ او په کنډوالو بدل شوي و.

جګړه د یوې خاورینې غونډۍ پرسر چې یو وخت ښکلې ماڼۍ وه ودریده او خپل فعالیتونه یې پدې توګه تشریح کړل:

کارونه زما دي په دې ښار کې بې حسابه

هر چیرې چې آبادي وه کړله ټوله ما خرابه

ټول مې په یو شان کړل خاورې لوګي

ټول له لاسه ولاړل هر څه شول دوړې لوګي

په هر ځای مې چې د اورلمبه کړه بله

ودانۍ په بربادۍ شوله بدله

ددې ځای خلک زما د لاسه شو فرار

په بلا د بې صبري کې نا قرار

ماوتښتوله د هغوي د خولې مړۍ

ما کړله ماته د هغو د سرکو پړۍ

ما کړله خاموشه د ښارونو خوشحالۍ

**ما کړله خوره  په عقـــلونو بـــې هوشـــۍ**

**نـــه مـــې تیلفـــون پرېښودنـــه نـــل د آب**

**ورمـــې کـــړ هغـــو تـــه  په مرمـــۍ ځواب**

**مـــا کـــرل تخمونـــه دنفـــرت هـــر ځای**

**لوړ مې کړل بـــــیرغ د تقابـــــل هر ځای**

«ســـولې» چې په چوپتیا ســـره دوران شـــوي ښار ننداره کوله د ښار په بدحـــال او ښکې تویولې. «جګړي» د هغو کارونو په بـاره کې چې کړي يې وو خبره بايلو ده .

د آه حســـرت او مايوســـي په نړۍ کې يې جګړې ته مخ وګرځاوو او داســـې پوښتنه يې وکړه.

دومـــره ناولـــې ولـــې يـــې اې جـــګړې

ســــــــــر تر پايه ډوب ګناه کې يې جګړې

«جګړه» بـــې له دې چې «ســـولې» ته د زياتو خبـــرو وار ورکړی، د ســـولې خبـــره يې پرې کړله او لـه هغـې څخـه يـې وغوښتـل چې په سولې پورې مربـوط ښار جګړې ته ورو ښيي او خپل فعاليتونه رونبانه کړي.

«ســـوله» هم په خوښۍ د هغه ښکلی ښار په لوری چې لرې واټن کې پروت وو. په حـــرکت شول تر څو د ښار نږدې ته ورسـيدل. سـولې له جـګړې څخـه غوښتنـه وکـړه څو ښار تـه داخل نه شـي او له همدې ځايه د هغه ننداره

وکړي سولې زياته کړه :

اى «جګړې» زه له دې ښکلي او ښايسته ښار سره چې ټول وګړي يې په صفا او صميميت کې يو له بل سره ژوند کوي، ډيره مينه لرم. لطفاً له همدې ځايه د هغه ښکلي ماڼۍ او پاك سړکونه وګوره. ځکه چې د تا «جګړې» هغه ځاي ته نږدې کيدل، د ښار د وګړو تر منځ ويره رامنځ ته کوي او ژوند اخلال کيږي.

زه له همدې ځايه ټول شيان لکه باغونه، ماڼۍ، ښکلي سړکونه، روغتونونه، ښوونځي تاته ښيم. وروسته سولې په دي

تـــو ګه د خپلـــو فعالیتونـــو په تعریـــف او توصیف شروع وکړه:

دا چې تــــه ګوری دا ښکلـــی ښار صفـــا

دلته رحـــــــــم او نعمت دي د خدا(ج)

زما کار دی آبـــــــــادي او عمران دده

عزت او آرامي د انســــــــــــان دده

ټول وګړي ددې ښار دي نیکــــــــــان

ځکــــه ښار د دوي دی جنـــــت نــــښان

رزق او روزي ډیـــره ده هـــر خـــوا کـــې

ټول وګړي یـې ژوندون کـړي په صفا کـې

واټونه او پارکونه یې زیبـــــــــا دي

**آدمیان یې هر سهار ماښام په دعا دي**

**او سیدونکي یې جمله دي نیک نظر**

**ښخو نرو یې تړلی آبادی ته خپل کمر**

**ګوره دادی آبادي زما د کارونو**

**آینه کې یې ته ګوره نتیجه د زحمتونو**

«جګړه» چې د سولې په واسطه د دومره آبادیو، د وګړو د خوښۍ او سولې د محبوبیت او بریالیتوب څخه د شرم په خولو کې ډوبه وه. د سولې له دې پوښتنې څخه حیرانه شوه چې ویل یې:

اوس رښتیا ووایه چې کوم یو له مونږه ناکام شو. زه هیله لرم چې زما او ستا ترسره شوي

کارونه په پوره بې پرې (بې طرفي) یو په یو پرتله (مقایسه) او قضاوت وکړی.

په دې حال کې مخکې له دې چې «جګړه» څه ووایې د الوتونکو غږ چې د دوی د پاسه دونو په ښاخونو کې په لیکه ناست وو، تر غوږ وشو چې په ګډه سره یې په ډیر خوږ غږ دا ترانه زمزمه کوله:

**موږ واړه مرغان خوښخوان**

**واړه وایو په صدق او ایمان**

**ای جګړې ته ناکام یې په جهان**

**له ستا څخه دی هر یو پریشان**

دادی زمـــــــوږ ټولـــــو پیغـــــام

دادی زمـــــــوږ ټولـــــو پیغـــــام

مــــوږ واړه مرغـــــان خوښخـــــوان

په ثنـــا د لـــوي څښتـــن غـــزل خـــوان

اې ســـــولې بـــــــریالی‌یې په هر آن

لــــه تـــا نـــه دي ټول واړه ښادمـــــان

دادی زمـــــــوږ ټولـــــو پیغـــــام

دادی زمـــــــوږ ټولـــــو پیغـــــام

پای

# Sola Aw Jagra

## (Peace and War)


Published by : Sanayee Development Organization (SDO)
Editor - in - Chief : Raz Muhammad Dalili
Author : Ahmad Fareed Arfi
Pushto Translation : Amanullah "Ludin"
Artist : : Sultan Hamid Fanoos
Composed By : Saifullah Zamani
1st Edition : 1000 copies, Financed by (NCA), Sep 1999
2nd: Enditon : 5000 copies, Financed by US-BPRM through IRC-UGP, Dec 2000
3rd Edition : 2000 copies, Financed by TroCAIRE and AusAid, Oct 2001
4th Edition : 1000 copies, Financed by SDF, February 2003
5th Edition : 1000 copies, Financed by SDF, August 2003
6th Edition : 2000 copies, Financed by SDF, Nov 2003
7th Edition : 1000 copies, Financed by SDF, Apr 2005

8th Edition :
Publishing date : Feb 2007
Number of copies : 1500 copies
Financed by : Sanayee Development Organization (SDO)



Kabul address : Sanayee Development Organization (SDO)
Charrahi Ansarri, street # 5th
Near (Muhammad Alam Faiz Zad) high school
Kabul telephone : 0093-(20) 2201693
Post Box : 181 Kabul Afghanistan
Email : sdfkabul@ceretechs.com
Websites ; wwwsanayee.org
Www.nawidefarda.com
Peshawar Address : Behind Orakzai Plaza and total CNG, university Road Shaheen Town, Peshawar Pakistan
Telephone : 0092-91-5842155 - 91582165
Fax : +92+-1-5845139